تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة فی حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب

ابن سید آکاخیل باچا صاحب

دوسرا حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

# مسئلة التحقيق في عصمة الأنبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ :

## التحقيق في عصمة الانبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ :

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴾ ( سورة ص آيت : ۸۲-۸۳)

مسئله د عصمة الانبياء هغه عظيمه اجماعي مسئله ده چې دې کې اربعة مذاهب فقهاء محدثين متکلمين بلکې معتزله هغوي هم قائلين د عصمت دي فقط په دې ۷۲ جماعاتو کې د اهل زيغو نه يو جماعت د خوارجو دي چې هغې ته جماعت د فضيليه خوارجو وايي هغوي د عصمت منکر دي او حتی کې قبل النبوة په انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ باندې نسبت د کفر هم ورته جايز ګڼي چې بعضې اوقاتو کې دوي نه کفر هم شوې عياذاً بالله .

پاکستان کې مودودي جماعت د دوي باني ابو الاعلى مودودي چې د هغه په رد باندې دي شيعو عقائدو کې د ديوبند لوي لوي علماء او د دې زمانې هم ډيرو علماء پرې ردود کړې دي هغه په خپل تفسير تفهيم القرآن کې ډير زيات ګستاخانه الفاظو سره د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د عصمت عقيدې نه انکار کړې دې بيا په مرورد وخت سره چې اعتراضات په مودوديانو او د دې جماعت په باني ابو الاعلى باندې وشول نو د مردان د تفهيم القرآن د مدرسې مهتمم هغه بيا د دغې تهذيب وکړو او د هغې خرافاتو نه يې د خپل هغه مقتدیٰ او امام تفسير خالي کړو بيا هم په هغې کې څه اعتراضات چې نسبت د تنقيص صحابه کرامو ته موجود وه دري څل تهذيب د هغې د افغانستان د حزب اسلامي په تنظيم کې بعضي علماء يو ځای شول او د تفهيم القرآن د مودودي پوره تهذيب يې وکړو .

نو که نن صبا تاسو تفهيم القرآن د ابو الاعلى مودودي وګورئ کيدې شي هغه حوالې چې مخکې معصرينو دده په رد باندې او دده د عقائدو په رد باندې رسائلو کې پيش کړې دده په تفسير کې اوس پيدا نه شي نو د هغې وجه داده چې اصل تفهيم القرآن ماسره شته د ابو الاعلى اولنې تفهيم القرآن هغه مونږ پيدا کړې دي خو دغه تفهيم القرآن دري څل اشاعت شوې دي يو څل د مردان د تفهيم القرآن د مدرسې لخوا نه شوې هغې کې د عصمت د عقيدې خلاف چې ده څه ويلي وه هغه يې ترې لرې کړې دي او يو څل د افغانستان حزب اسلامي

تنظيم شائع کړې دي په هغې کې ېيا تنقيصات د صحابه وو څو مره بې کاره عقائد چې اعتراضات پرې شوې وه هغه ټولو نه يې صفا کړې دي خو اصلي تفهيم القرآن کې څو څو ځايه د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ته د کبائرو بلکې د کفر نسبتونه په خپلو عباراتو کې کړې دي.

دا موضوع ډيره طولاني ده او حصريې په چند ورقاتو کې ممکن نه وه ځکه چې قرآن عظيم الشان کې چې انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ته څه نُسب شوې دي آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته څه د خطاء د سهوې نسبت يا حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ چې کومه بد دعائي کړې وې او د هغې نه بيا حياء کوي په ورځ د قيامت او د شفاعت نه ځان وروسته کوي او يا نسبت د کذباتو ثلاثه وو ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته کوي او دا رنګې نسبت د بعضې اعمالو حضرت داود عَلَيْهِ السَّلَامُ لره اګر که واقعه معروفه دې کې چې دې د خپل فوجي اوريا ښځه باندې عاشق شوې وه او د هغه د قتل ارادې لرلې هغه محضې افتراء ده.

تفسير روح المعاني په هغه ځاى باندې: ﴿وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ﴾ دا ذکر کړې دي چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دا فرمايي که دغه واقعه چا بيان کړه د داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ په حالاتو کې چا دا قصه وکړه چې داد اوريا په ښځه عاشق وه او بيا يې هغه ته وويل چې دا طلاقه کړه هغه نه طلاقوله او بيا يې دفاع وزير ته وويل چې جهاد ته دا سرې بوځه او په سختو تعارضاتو کې دې مخې مخې ته کوه چې شهيد شي همغه شان يې وکړو هغه يې شهيد کړو بيا هغه فرشته ګان چې د امتحان د پاره راغلي وه چې دده ۹۹ ګډې دي او زما يوه ګډه ده او دا وايي چې دا ماته راکړه چې سکيړه پوره شي په ما باندې په خبرو کې غالب دي دا دې ته اشاره وه ځکه د داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ ۹۹ بيبيانې وې او د هغه اوريا يوه بي بي وه هغه يې ترې خپله کړه.

دغه شان واقعه چې تفسير يسير راخيستې ده او بعضې کمزورو تفاسيرو په شان نزول دده ځاى کې بيانه کړې ده محققين پرې رد کوي ابن کثير روح المعاني وغيره سخت ردود پرې کوي.

په دغه ځاى باندې روح المعاني دا عبارت نقلوي چې حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي چې يو سړي عام سړي باندې تهمت ولږوي نو هغه ته ۸۰ دُرې دي خو که په پيغمبرانو کې په چا داسې تهمت ولګوه نو ۱۶۰ درې دي نو حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي که دا واقعه چا بيان کړه خلکو ته نو ۱۶۰ درې دي ووهلې شي چې يو افتراء دروغ بل د خداى د

يو عظيم پيغمبر بې ادبي ورکې ده .

دغه شان سليمان عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ته بعضې نسب هغه افتراء ده دروغ دي بعضې چې حقيقت لري هغه مجاب دي نو چونکې دغه مسئله عصمت د انبياء منحصره نه ده ۱۴ ځايه تقريباً قرآن عظيم الشان کې انبياء ته څه نسبتونه دي هغه هر ځای کې مفسرين د هغه ځای نه خپل جوابات لري نو هغې طرف ته ما ذهاب ونه کړو فقط چند هغه نصوص مې راغونډ کړل چې د قرآن عظيم الشان نص په دې دال دي چې ابليس مخلصو عبادو ته څه نه شي ويلي .

او په اتفاق د علماو سره مراد له مُخلَص بالفتح نه هغه انبياء عَلَيْهِمُ ٱلسَّلَامُ دي يو مخلِصين دي بل مخلَصين ، مخلص في خطر عظيم ، هغه بيا هم په غټ خطر کې دي کيدې شي هلاک شي .

او مخلَص چې شي هغه معصوم دي نو دغه انبياء عَلَيْهِمُ ٱلسَّلَامُ دوي ته د نزديکت د دوي د خرابولو ذلاتو نه ابليس چې کوم دي خپله بيزاري ښکاره کړې ده دغه روايات د مخلصينو نه د بيزاري چې دي او دغه نصوص مؤيد د عصمت د انبياء دي باقي به د نورو هغه محدثينو فقهاء عبارات چې په دې باندې اجماع ګاڼې نقل شوې دي امت دې باندې متفق دي چند حوالې به ذکر کړم :

سورة ص آيت : ۸۲ : ﴿فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ او دا مسئله چې انبياء عَلَيْهِمُ ٱلسَّلَامُ نه خو په اتفاق سره کفر قبل النبوة او بعد النبوة د هيڅا قول هم نه دي سوا د فضيليه د خوراجو نه او هر چې کبائر دي په کبائرو باندې هم اجماع ده چې قبل النبوة او بعد النبوة له دوي نه کبائر نه دي شوې دريم صغائر دي صغائر قبل النبوة بعد النبوة په دې کې د متحققينو قول دادی لکه بدر الدين عيني وايي چې زما رايه داده چې انبياء عَلَيْهِمُ ٱلسَّلَامُ نه قبل النبوة او بعد النبوة صغائر هم نه دي شوې او بعضې علماء هغوي بيا وايي چې قبل النبوة صغائر شوې دي خو بعد النبوة ترې نه صغيره شوې ده او نه کبيره شوې ده .

علماء محدثين فقهاء متکلمين دوي چې دا مسئله ثابتوي د عصمت د انبياء وايي ځکه دا دليل د صدق النبوة د دوي دي په دې دومره طول د ايامو کې دوي د هر څه نه پاک پاتې دي او هر چې معتزله دي هغوي متبعين د عقل دي نو هغوي څه وايي وايي د اعصمت د انبياء عَلَيْهِمُ ٱلسَّلَامُ عقيده عقلاً ثابته ده که چيرته دوي معصوم نه شي نو د هر پيغمبر امت د دغه

پیغمبر په اتباع مامور دي لکه مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په اطاعت مامور یو نو چې هر کله مونږ په اطاعت مامور یو اوس دا امکان ولري عیاذاً بالله چې د هغه نه صغیره یا کبیره شوې ده .

نو دا خو معصیت دي کنداو بلخوا مونږ مامور یو په اطاعت د هغه باندې نو که امکان د معصیت د نبي نه راشي عَلَيْهِمُ السَّلَامُ نو امت به په دې معصیت کې هم د هغه تابعداري کوي کنه ځکه مونږ خو د هغه په اتباع مامور یو چې هغه څه کوي تاسو یې کوي که اوس امکان ولري چې هغه نه ګناه کیږي نو دغه ګناه به د امت د پاره بیادین وي امت به یې هم کوي مونږ خو په اتباع مامور یو نو وایي عقلاً دا نه شي کیدې چې د انبیاء نه دې څه ګناه وشي معتزله هم د عصمت قائل دي که چیرته ګناه د هغوي نه کیدې شوې نو امت به په اتباع نه مامورید لې یا به په معصیاتو کې اتباع راشي نو راجحه داده چې ټول او وړو ټولو نه معصوم دي کوم نُسب چې شوې هغه نُسبو باندې به اطلاق د خطاء کیږي خو خطاء دوه معنی ګانې لري یوه خطاء په معنی د خطاء کاري سره ده او بله خطاء په معنی د سهوې سره خطاء په معنی د خطاء کارې سره نه ده انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ته چې د څه شي نسبتونه شوې دې هغه به حملیږي په خطاء بمعنی السهو باندې هغه دوي نه سهوې شوې دي او نسیانات شوې دي .

بعضې کارونو کې به ډیر ورخوږیږي هم نه دیو چا قول ته به بنه تاویل هم کوي بریلوي حضراتو ما پسې یوه خبره خوره کړې ده ډیر ځای په ځای دا خبره ډنګیږي نو زه به خپله صفائي وکړمه یو بل ته دا خبره کوي موبایلونو کې ریکارډ کړې ده ما یادوي وایي دا دوه ډزي دي عقیده یې خرابه ده اوس هغه عوام خو نه شي قانع کولې په دې ځکه یې نه شي قانع کولې چې عقیده سرحد کې ما وروبنودله دوي نه وه وربنودلي نو هغه عوام په څه دو که کوي عوامو ته زما دغه ځای را واخلي چې انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ نه کوم کارونه شوې دي دا خطاء ګانې دي نو دلته نور خپل تفسیر په کې شروع کړي وایي ګوره خطاء خو خطاء کاري ته وایي کنه پیغمبر ته یې خطاء کار ویلي د عوامو عقیده په مونږ خرابول غواړي نو خطاء یو په معنی د خطاء کاري دا خو ګناه ته ویل کیږي او بله خطاء په معنی د سهوې ده مونږ ده ته د خطاء نسبت د سهوې کوو د ذنب معنی د خطاء مه کوه او که ته وایي چې نسبت د خطاء نه دې شوی

روایت د مستدرك د حاکم د ۲ جلد د عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حدیث پرې دال دي :

لما اقترف ادم الخطيء . اطلاق د خطيئ وشو وربانديږ كه ونه شو دغه اوس جدا خبره ده چې دغه خطاء ته ته گناه وايي خطاء كاري وايي او كه سهوه وايي لكه څنگه چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په دې حديث كې خطيئ راغلئ او دغه خطاء په معنى د ذنب سوء او خطاكاري نه اخيستل كيږي بلكې په معنى د سهوې سره نسيان سره نو زما په قول كې هم دغه واخله كنه ما مثلاً يو عبارت پيش كړو چې انبياء عَلَيْهِ السَّلَام نه خطاء كيږي گناه نه كيږي چې گناه نه كيږي دا خپله مقتضي د دې شو چې زه خطاء په معنى د گناه نه اخلم كنه ته ولې خطاء تأويل د خطاء كاري ته اړوي دا خو ضد او تعصب دي نو ډيرو ځايونو كې دا پرچار شروع كړې دي چې دې انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَام ته خطاء كار وايي انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَام ته خطاء كار نه هغوي نه گناه نه كيږي چې څه ترې شوي هغه خطاء ده بمعنى سهوه والنسيان.

سورة ص آيت: ۸۲ ﴿فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ ۸۳: ﴿إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ﴾ قسم مې دې وي په عزت ستا زه به سركش كړم عباد ستا او بچيان د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام غونډ مگر عباد ستا له دوي نه چې دي مخلصان هغوي ته نسبت د اغواء نه ابليس بيزاري ښكاره كړه.

دارنگې سورة حجرات ايت: ۳۹ : ﴿قَالَ رَبِّ بِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ﴾.

دارنگې سورة الصافات : ﴿إِنَّكُمْ لَذَائِقُو الْعَذَابِ الْأَلِيمِ وَمَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾.

هغوي ته جزاء نشته ده كنه تاسو ته به بدل نه دركول كيږي مگر موافق د اعمالو ستاسې مگر عبادِ مخلصين چې كوم دي ذائقين د عذاب اليم هم نه دي او هغوي ته جزاء بالعمل هم هلته نشته دي نو دا الا استثنى د انكم د خطاب نه هم شوه او د ما كنتم تعملون هم شوه نو تاسو ته به د عمل موافق جزاء وي عبادِ مخلصينو ته به نه وي او تاسو به ذائقين د عذاب يې عبادِ مخلصين به نه وي.

دارنګې سورة الصافات آيت : ۷۳ : ﴿فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ هغه استثناء شوه .

دارنګې سورة الصافات آيت : ۱۲۷ ﴿فَكَذَّبُوهُ فَإِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ﴾ اى لمحضرون عندنا في النار ، ﴿إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ .

دارنګې سورة الصافات آيت : ۱۵۸ : ﴿إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ﴾ په فتحې د لام سره انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ دي .

کوم خلک چې د عصمت مخالف دي هغوي د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه واقعه پيش کوي او د هغې نه مفسرينو کرامو پنځه (۵) جوابونه کړې دي چې هغه به زه ذکر کړم :

﴿وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهِ﴾ قصد وکړو زليخي بي بي يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ ته قصد غلط .

﴿وَهَمَّ بِهَا﴾ ده به هم ورته قصد کړې واي .

﴿لَوْلَا أَن رَّأَىٰ بُرْهَانَ رَبِّهِ﴾ که يې نه وي ليدلې دليل د رب خپل .

نو دوي داسې وايي چې :

همت به وهم بها . هغې هم ورته قصد وکړو ده هم ورته قصد وکړو خو بيا يې برهان وليدلو نو خداى تعالى ترې راوګرځولو نو قصد خويې وکړو ورته کنه دې ځاى کې مفسرين کرام (۵) جوابونه ذکر کوي :

د اول جواب خلاصه دا ده چې : الهَمّ همين . هَمْ دوه معنى ګانې لري يو هَمْ دي په معنى خطرې د نفس سره او دويم هَمْ دي په معنى د عزم قلب سره د زړه قصد . هَمْ په معنى د خطرې سره بعضې علماء په انبياء باندې اطلاق ممنوع نه ګڼي چې نفس ته يوه خطره راغله وايي د هغې داسې مثال دي لکه په روژه کې به اوبه نه څکي قصد د اوبو څکلو به هم نه کوي چې زه اوبه څکم ليکن که په روژه کې يخي اوبه او داسې بنه د ليمبو شربت په پشکال کې ستا مخې ته ځوک راوړي نو هَمْ راځي که نه راځي په معنى د خطرې د قلب سره يا د خطرې د نفس سره زړه ته يا دې نفس ته يوه شائبه او تکان راشي کنه چې اوس روژه نه واي دا مې څکلي

واي نو يو دغه هَمُّ دي او بل دا هَمُّ دي چې زړه نه را پورته شي چې يا ره داشي زه څكم دا كار كوم دا فرق لري .

د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ دا هَمُّ چې وه په معنى د خطرې سره وه صرف راغله خو چې دليل يې وليد نو خطره هم ختمه شوه عزم يې نه دي كړې او عزم د زُليخي چې وه هغه په معنى د عزم القلب سره وه چې هغې دروازې بندې كړې د هغې حالات بدل وه نو هغه عزمِ قلبي وه هغه ګناه وه او هَمُّ د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ چې كوم دلته ثابت شوې دي دا په معنى د خطرې د نفس سره لكه انسان چې ځوان وي شهوات ولري فرشته نه وي نو هغه خامخا په داسې حالاتو كې نفس ته يوه خطره راځي دا فقط هغه خطرې په معنى باندې هَمُّ شوي دي دا يو قول شو .

تفسير زاد المسير جلد ۳ صفحه ۴۱۵ : واختلفوا في همه بها على خمسة اقوال . اختلاف كړې په دې هَمُّ كې هم بها كې خمسة اقوال دي :

احدها : انه كان من جنس همها فلو لا ان الله تعالى عصمه لفعل . دې چې وه په هَم د هغې كې وه كه خداى تعالى ساتلې نه واي نو هم به يې كړې واي .

والى هذا المعنى ذهب الحسن وسعيد ابن جبير والضحاك والسدي وهو قول عامة المفسرين المتقدمين واختاره من المتأخرين جماعة منهم ابن جرير وابن الأنباري وقال ابن قتية لا يجوز في اللغة هممت بفلان وهَمَّ بي وانت تريد اختلاف الهمين واحتج من نصر هذا القول بانه مذهب الاكثرين من السلف والعلماء الاكابر ...... فأما هو . هر چې يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ وه .

بيا لاندې وايي :

فعارضه . راپيښ شو ده ته .

ما يعارضه البشر من خطرات القلب وحديث النفس من غير عزم . دا راپيښ شول ورته.

فلم يلزمه هذا الهم ذنباً . هغه ذنب لازم نه شو په ده باندې د هغه هَمُّ په وجه .

فان الرجل الصالح قد يخطر بقلبه . صالح بنده په زړه يې تيريږي چې دې روژه وي .

شرب الماء البارد . دا راشي نو دا محضې هَمُّ وي او خطره د قلب او د نفس وي .

فاذا لم يشرب لم يؤاخذ بما هجس في نفسه وقد قال صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عفي لامتي عما حدثت به انفسها ما لم تتكلم او تعمل . امت نه مې عفوه شوې هغه چې نفسونه ته يې څه را پيښ شي چې خبرې يې نه وې کړي او عمل يې نه وي کړې .

وقال صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هلك المصرون ، وليس الاصرار الا عزم القلب . قصدي قلب چې وشي مُصر وي بيا نو دې قول والا فرق وکړو په مينځ د حديث النفس کې او د عزم القلب کې نو هم د زليخې بې بې چې وه دا عزمې قلبي وه او هم د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ حديث النفس وه .

وسُئل سفيان الثوري ايؤاخذ العبد بالهمة ؟ په هم نيول شته .

فقال اذا كانت عزماً . چې عزم وي شته دي .

قُلْ إِن تُبْدُوا مَا فِي أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ او تخفوه . يا منسوخ دي او که منسوخ يې نه ګڼي نو په معنى د عزم قلب سره دي .

ويؤيده الحديث الصحيح عن رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه قال يقول الله تعالى اذا هَمَّ عبدي بسيئة ولم يعملها لم اكتبها عليه . نه يې ليکم ورته .

فان عملها كتبتها عليه سيئةً . نو دغه هم په معنى د عزم قلب نه دي دا په معنى د حديث النفس سره دي .

واحتج القاضي أبو يعلي على أن همته لم تكن من جهة العزيمة وانما كانت من جهة دواعي الشهوة . په دې قول يې استدلال کړې . معاذ الله انه ربي .

دارنګې دا قول :

كذلك لنصرف عنه السوء والفحشاء دا اول قول شو چې هم همين دي هم د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ حديث النفس دي او هم د زليخې چې کوم دي په معنى د عزم قلب سره دي حديث النفس ګناه نه ده .

القول الثاني : انها همت بي . بې ورته هم وکړو .

ان يفترشها وهَمَّ بها . اي تمنها ان تكون له زوجة . ده هم قصد وکړو که خاوند يې نه واي او دا زما بي بي واي. رواه الضحاك عن ابن عباس

والقول الثالث : ان في الكلام تقديماً وتاخيراً . دې كلام کې تقديم او تاخير دي .

ولقد همت به . بي بي ورته قصد وکړو .

وهم بها . ده به قصد کړې واي .

لولا ان رأى برهان ربه . که دليل يې ليدلې نه واي تقديم او تاخير وکړه وايي دا جزا په شرط مقدمه شوې ده معنی داده :

لقد همت به ولولا ان رأى برهان ربه لهم بها . که ده برهان نه واي کتلې نو ده به هَم کړې واي .

لولا رائي لپاره د انتفاء د ثاني له وجې د وجود د شيء اول نه که ده دليل نه واي ليدلې نو هم به يې کړې واي ، خو چې دليل يې وليدلو نو هَم يې هم ونه کړو نو بالكل قصد يې نه دي کړې دا هم يو بنه تاويل دي اهل لغت خو به څه خبره کوي چې تقديم د جزا د لولا په لولا باندې مسموع نه ده بس دغه د مسموعاتو نه شوه يو شي مسموع نه وي قرآن كريم کې موجود شي د اهل تفسير قول پرې پيدا شي دا قوي دليل دي .

ته مسموع چا ته وايي شعراء د عرب ته وايي د شعر د عرب لغوي يو قاعده ثابتوي او د نص القرآن نه يې نه ثابتوي دا خو بعيده ده دلته بعضو دا جرحه کړې ده چې تقديم د جواب د لولا په لولا باندې مسموع نه دي نو چيرته مسموع نه دي په شعر العرب کې نو شعر العرب کې نه دي نص القرآن کې دي کنه او اهل تفسير پرې قول کړې دي زما تولو کې دا تاويل خوښ دي او دې ځای ته چې وګورئ همدا ورسره جوړيږي :

لولا ان رأى برهان ربه . که ده نه واى ليدلې دليل د رب خپل نو څه به شوې وه جزا بيا څه ده چې هغه نه ده تفسير د جزا خو به دلته خامخا کوي دغه به وايي چې مخکې د جزا د لولا مسموعه نه ده نو وروسته خو مسموعه ده تقدير د جزا هغه را او باسه بله جزا دلته شته نه سوا ددې نه چې دا مخکې ورته جزا کړي نو هغې ورته هَم وکړو او که ده چيرته دليل ليدلې نه واي

ده به هم هَم کړي واي خو چې دليل يې وليدلو هم يې ونه کړو دليل څه شي وه څوک وايي دليل هلته يو بوت وه زليخي پرې څادر واچوه نو دا ورته دليل شو چې ته بُت نه حياء کوي زه يې د خالق نه ولې ونه کړم څوک وايي دا دليل دي ډير تاويلات دي دلته .

څوک وايي دليل دا وه چې دې وخت کې دا ويده د پرکالي په حالت کې وه دروازې پسې بندې شوې بي بي پرې راغله نو چې دې يې څنګه بيدار وه بره يې چې وکتل نو قدرتي په چت ورته ليکل شوي وه : انك من الانبياء ، او دا عمل عمل دي د سفهاء داسې عبارت ليکل شوي وه واي دا ورته دليل شو که ده هغه دليل ليدلې نه واي لَهَمَّ ده به قصد کړې واي .

دريم دليل تفسير قرطبي ذکر کوي يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ همسا په لاس ورته رابنکاره شو همسا يې لاس کې وه سم په جلال وه ورته نو يو خوا ژړاګانې پسې کوي بلخوا روحي امداد ورسره کوي چې روحانيت يې دلته حاضريږي او دې له غټ مشکل نه خلاصوي ، نو ايات ربها هغه د يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ همسا په لاس حاضري وه روحاً که، غه نه واي لَهَمَّ بها قصد به يې کړې واي دا بنائسته تاويل دي چې دا تقديم د جزاء شوې دي په شرط باندې .

والقول الرابع انه هم ان يضربها وهمت . هغې قصد وکړ غلط وهمّ دې قصد وکړو وهلو د هغې ته ديکه کولو د هغې او له ځان لري کولو د هغې ته .ذكره ابن الأنباري.

والقول الخامس : وهم بها هم الفرار . ده د فرار قصد وکړو هغې هم قصد وکړو غلط او ده د منډې قصد وکړو . حكاه الثعلبي .

بعضې خلک چې د عصمت نه منکر دي هغوي بيا دې ايات نه استدلال کوي :

﴿ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ﴾ آل عمران آيت : ٣٦.

مور د مريم بي بي دعا کړې پناه نيسم په تا سره دې مريم بي بي اولاد ددې ته له شيطان رجيم نه په تا سره پناه غواړم نو حديث بيا دادی چې هر مولود مس د شيطان کوي خو دا دواړه شيطان نه وه مسه کړي .

نو معلومه شوه چې ټولو انبياء کې هم په تمسيس د شيطان راغې نو د هغې جواب دادې قاضي عياض په شفاء او امام نووي په منهاج کې وايي چې دغې دواړو ته د شيطان

مس قدرې هم نه وه راغلې هرچې دې دواړو نه سواء انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ټول دي هغوي ته مس راشي خو مس مضر نه وي یعنې ټول انبیاء چې له مور نه پیدا کیږي ژاړي نه که څوک وايي اسماعیل عَلَيْهِ السَّلَامُ ژړل ژړل یې خو هغه شید وپسې ژړل او کې شوې وه مس د شیطان نه یې نه ژړل انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ دلته دوي ته مس هم نه دې شوې د هغه مور د عایې قبوله شوې وه له دې نه سوا نور انبیاء چې دې مس راځي خو مس مضر نه وي ضرر د مس څه شي دي دې به ژاړي او انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ چې څومره پیدا شوې دي نو دې انبیاء نه ژړا نه ده ثابته نو مس پرې تاثیر نه دي کړې نو د حدیث دا مقصد چې دې دواړو ته تمسیس نه دي راغلې سوا له دې نه نور انبیاء چې دې تمسیس راغې خو تمسیس مضر نه شو یعنې دوي یې ونه ژړول همدا وجه وه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پیدا شو د نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پیدائش په وخت کې علماء دې باندې په دلائل النبوة کې بابونه لکوي دې مبارک په سجده باندې پریوت بیا یې سر مبارک اسمان ته پورته کړو بیا یې ګوته د شهادت اوچته کړه :

للحمد لله الله اکبر کبیراً الله اکبر کبیراً الله اکبر کبیرا والحمد لله کثیرا والحمد لله کثیراً و

الحمد لله کثیرا ، دې باندې قاضي عیاض په الشفاء کې باب لړولي د نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مکالمات یې په دغه وخت ثابت کړي دي دا د نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دغه وخت سره د مس د شیطان نه هیڅ ضرر ونه لیدلو نه یې وژړل نه یې چغې ووهلې بلکې د خپل خالق ثناء یې ادا کړه او ګوته د شهادت یې وخوزوله او په سجده باندې پریوت نو انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ته که مس راهم شي خو مس مضر نه دي دوي ژړوي نه په هغه وخت کې نو دې ایات نه او دې حدیث نه که دوي استدلال کوي استدلال یې تام نه دي .

تفسیر البغوي جلد ۲ صفحه ۳۰ دا حدیث را اخیستې دي د حضرت ابي هریرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په روایت سره :

. سمعت رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یقول ما من بني آدم مولود الا یمسه الشیطان حین یولد فیستهل الصبي صارخاً من الشیطان . ماشوم چغې وهي له مس د شیطان نه .

غیر مریم وابنها. نو هر ماشوم ژاړي انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ژاړي نه نو مس تاثیر ونه کړي هلته.

څه نور روايات چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايلي دي متعلق زه يې ذکر کوم مسند البزار جلد ٢ صفحه ١٦٦ :

حدثنا سهل قال حدثنا محمد بن سليمان قال حدثنا اسماعيل بن زكريا مولى بني اسد عن محمد بن عون الخراساني عن عكرمة عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما من احد الا يلقي الله قد هم بخطيئة . يو بنده هم نشته مګر د الله سره به لقاء به په داسې حال کې کوي چې قصد د خطيء به يې کړې وي او عملها يا به يې خطيء کړې وي .

الا يحيى بن زكريا عَلَيْهِ السَّلَامُ فانه لم يهم بها ولم يعملها . نه يې قصد کړې دي او نه يې عمل کړې دي .

نو که دې ځاى نه دوي درته استدلال کوي چې هريو به خداى تعالى سره ميلاويږي يا به يې خطيئه کړې وي يا به يې قصد کړې وي نو جواب به هغه اول ذکر کيږي چې :

الهم همين . يو هم په معنى د خطرې د نفس سره شو او بل هم په معنى د عزم القلب سره شو غير د انبياء چې څومره هم دي نو هغه ايات نه هم پته لګي .

﴿كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَا أَمَرَهُ﴾ . هرګز تيول پوره نه کړه دې انسان هغه چې ده ته الله پرې امر کړې وه نو غير له انبياء نه يا عمل د خطاء شوې دي يا عزم قلبي د خطاء شوې دي هر چې انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ دي هغوي نه هَم په معنى د خطرې د نفس سره به راشي داد دوي هغه استدلالات دي چې د هغې نه مخکې کوم جواب چې وَهَمَّ بِهَا کې مفسرينو کړې وه هغه به دلته هم را معاد کيږي خپله نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره چې کوم قرين دي هغه اسلام راوړې دي يا تسليم دي ده لره هغه حديث زه ذکر کوم .

الدر المنثور في التفسير بالمأثور للسيوطي جلد ١٣ صفحه ٢٠٧ :

واخرج ابن حبان والبغوي وابن قانع والطبراني وابن مردويه عن شريك بن طارق رضي الله عنه قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ليس منكم احد الا ومعه شيطان . يو هم په تاسو کې نه دي مګر شيطان ورسره وي .

قالوا ومعك يارسول الله . تاسو سره هم وي .

قال ومعي . ماسره هم دي .

الا ان الله اعانني عليه . ليکن خدای تعالی مدد کړي له ما سره په هغه باندې .

فاسلم . پس اسلام يې راوړي دي هغه زما چې کوم شيطان قرين دي الله ما سره مدد کړي اسلام يې راوړي نو دې ځای کې يو تاويل د فاسلم دي .

دويم تاويل د فاسلم . زه په سلامتي يم له هغه نه صيغه د متکلم يې کړه اسلم يُسلم اسلاماً أسلم فاسلم ماضي کړه غائبه اسلم يسلم اسلاماً اسلم ای فهو أسلم. هغه اسلام راوړې.

يا اسلم يسلم اسلم . متکلم واحده يې کړه .

فأسلم يعني عنه . زه په سلامتي يم له هغه نه يعنې ما ته څه ضرر نه شي رسولې دا دواړه تقديره محدثين ذکر کوي بعضې ترجيح دي ته ورکوي چې دا فاسلم ده د اسلام راوړې دي .

واخرج مسلم وابن مردوية عن عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خرج من عنده ليلاً قالت فغرت عليه. ما ته پرې غيرت راغې څکه بني زياتې وي ما وويل ګنې د بلې کوټې ته به تللي وي.

فجاء . راغې . فرأى ما أصنع فقال مالك يا عائشة اغرت . په غيرت کې راغلې يې .

فقلت وما لي لا يغار مثلي على مثلك . زما غونډې ځوانه جيني تا غونډې حسين جميل خاوند باندې چې په غيرت او غصه نه شي په څه شي به غصه شي .

عجيب جواب يې کړي يعنې زه ځوانه يمه او په ټولو بي بيانو کې ښائسته يمه او خاوند هم زما ستا غونډې حسين او جميل دي نو چې هغه ما نه په دې شپه ځي او بل ځای ته ځي نو ما ته به غيرت پرې نه راځي.

فقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أقد جاء شيطانك؟. شيطان درته راغلي دي .

قلت يا رسول الله أمعي شيطان؟. ما سره شيطان دي .

قال نعم ومع كل انسان . هر انسان سره شيطان دي .

قلت ومعك . ما ورته وويل تاسره هم دي .

قال نعم . وايي هاو .

ولكن ربي اعانني عليه حتى اسلم . ليکن رب زما مدد وکړو له ما سره په مقابل د هغې کې تر دې چې هغه سلام راوړو ، یا اسلم ، زه د هغه نه په سلامتي شو مه .

واخرج مسلم وابن مردويه عن عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما منكم من احد الا وقدوكل الله به قرينه من الجن .

خدای تعالی پرې قرین د جن نه مقرر کړې دي .

قالوا واياك يا رسول الله قال واياي . ما سره هم دي .

الا أن الله اعانني عليه فاسلم فلا يأمرني الا بخير . ددې .

فلا يأمرني الا بخير . ددې تکړې نه علماء دې ته ترجيح ورکوي چې دلته قرائت د فأسلم نه د فَأَسلم قرائت راجح دي يعني فاسلم د اسلام راوړې دي نو که فأسلم شي معنی زه له ده نه په سلامتيا باندې يمه خو د اسلام نه دې راوړي .

نو چې هر کله اسلام قرين د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ رانه وړو او دې ترې نه په سلامتيا شو نو بیا امر په خير څنګه کوي شيطان خو چا ته امر په خير نه کوي دا امر کوي ما ته په خير باندې محدثين دلته دا دليل قوي ګرځوي چې قرائت د فَأَسلم راجح دي .

دا طالبانو کې دا مرض دي چې دوي ته کتب الحديث چې څو مره هم پيش کړي تسلي يې پرې نه کيږي لکه دا فنون نه يې که اوس دې ورته ويلې چې د قطبي په حاشيه فلاني ځای باندې دا خبره ذکر ده د حمد الله په هغه صفحه ذکر ده نو دې سمدستي ورته راويښ شي چې دليل اوس پيدا شو هغه ورته ډير مقصود وي .

او بل مې دا مرض دې طالبانو کې حس کړو چې حديث ورته وايه فقه ورته وايه خو چې وه دي وويل د ديوبند علماء داسې وايي يو دم بهرا برګ شي چې اوس دليل پيدا شو نو دا خو مقلدين دي دا خو ادله نه دي هسې د تائيد لپاره وي خو دوي ته د ديوبند دا خبره ډيره معتمد ښکاري نو داد هر چا مينه ده چې له چا سره يې مينه وي .

نو كه تاسو دې فنونو مدونه وو كې گوري : ملا جلال مير زاهد باندې چې كوم عبدالحي لكهنوي صاحب يوه شرحه كړې ده حاشيه ده : التعليق العجيب لحل حاشية شرح منطق التهذيب نو په هغې كې تاسو وگورئ دا مسئله هغه ذكر كوي چې د ابليس يو كړوسي وه دا اعتراض را اخلي چې : ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ﴾ عالم ته رحمت شو نو په عالم كې خو ابليس راغې نو ابليس ته هم رحمت شو او كه نه شو نو دې ځای باندې را اخلي :

بامتا ابن هيم ابن لاقيس ابن ابليس . راغې او نبي اكرم ﷺ باندې ايمان راوړو او څو سورتونه يې ترې نه زده كړو نو د ابليس په نسل كې هم رحمت وگرځيده څه خلک يې د عذاب نه خلاص كړه او دې نه هم پته ولگيده چې نبي عليه السلام خپل قرين اسلام راوړو نو نبي اكرم ﷺ رحمت د عالم د پاره شو كه په عالم كې د ابليس جماعت راشي هغوي كې هم څو د پاره رحمت وگرځيده .

واخرج ابن مردويه عن ابى عباس رضي الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ ما منكم من احد الا و قد وكل الله به قرينه من الجن قالوا و إياك يا رسول الله قال و اياي الا ان الله اعانني عليه فاسلم يا فاسلم .

دا روايات صحيح مسلم بيروت چاپ جلد ٨ صفحه ١٣٩ ، مسند احمد بن حنبل جلد ٦ صفحه ١١٥ ، صحيح ابن خزيمه جلد ١ صفحه ٣٣٠ ، الاحكام الشرعية للاشبيلي جلد ٣ صفحه ٢٨٦ ، العمدة من الفوائد والاثار جلد ١ صفحه ١١١ ، كې ذكر كړې دي .

دلائل النبوة للبيهقي جلد ٧ صفحه ١٠١ ، شرحه كوي :

ولكن الله اعانني باسلامه او اعانني عليه حتى أسلم . خدای تعالى ما سره امداد كړې دي .

باسلامه . نو داد فاسلم معنى يې كړې ده يا يې مدد كړي ما سره .

حتى اسلم . چې زه سالم شوم له هغه نه .

ولكن الله اعانني باسلامه ان كان هو الأصل يؤكد قول من زعم ان قوله فاسلم من الاسلام دون السلامة .

اسلم اسلام يې راوړې دي داد اسلام نه دي نه له سلامتيا نه يا دا أسلم جوړېږي سلامتيا نه چې شي يسلم أسلم نو دا قرائت د حديث به فأسلم يا فأسلم شي متكلم اسلم خو بيا د اسلام نه راځي فأسلم يا فأسلم .

وكان شعبة او من دون شك فيه و ذهب محمد بن اسحاق بن خزيمة رَحِمَهُ اللَّهُ الى انه من الاسلام . چې داد اسلام نه دي نو فأسلم شو .

واستدل بقوله فلا يأمرني الا بخير . دې نه يې استدلال کړې دي چې ما ته امر په خير سره کوي نو وايي :

ولو كان على الكفر لم يأمر بخير وزعم ابوسليمان الخطابي رَحِمَهُ اللَّهُ ان الرواة يرون فأسلم من الاسلام الا سفيان بن عيينة فانه كان يقول فأسلم اى اجد اسلامة منه .

سفيان ابن عيينه دلته اسلم وويل باقي رواة ټول فأسلم وايي دا اسلام نه يې اخلي وقال ان الشيطان لايسلم قط. دا حديث هم خاصتاً د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د عصمت متعلق دال شو چې ده مبارک نه څه هموم هم د ګناه نه دې شوي ځکه دده قرين دده موافق وه په خيريې ورته امر کړي په شريې ورته نه دي کړي .

ددې نه بعد زه هغه اقوال ذکر کوم چې د عصمت اجماع يې را اخيستې ده :

فتاوى الحديثية لابن حجر الهيتمي جلد ۱ صفحه ۱۵۹ :

ان الانبياء معصومون قبل النبوة وبعدها من الصغائر والكبائر عمداً وسهواً.

پيغمبران عَلَيْهِمُ السَّلَامُ معصوم دي قبل النبوة او بعد النبوة هم د صغائرو نه هم د کبائرو نه هم عمداً هم سهواً .

عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ۱۵ صفحه ۴۵۶، د يحيى عَلَيْهِ السَّلَامُ قصه کوي که دا چا وويل چې حصور دلته په معنى ددې سره لا ذكر له وايي صحيح نه ده دا تاويل ځکه صحيح نه دي .

بل انكر حذاق المفسرين ونقاد العلماء وقالوا هذه نقصية وعيب ولا يليق بالانبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ.

د حصور أدغه ځای کې معنی داده :

وانما معناه انه معصوم من الذنوب ای لا يأتيها كأنه حصر عنها . ګويا کې د ګناه نه محبوس وه د حصور معنی داده داسې نه وه چې ده شهوات نه لرل هغه خو عيب دي نقص دي .

تفسير القرطبي جلد ۱ صفحه ۳۰۸ ، د آدم عليه السلام په واقعاتو کې چند مسائل را اخلي ، ۱۲ مسئله داده :

واختلف العلماء في هذا الباب هل وقع من الانبياء صلوات الله عليهم اجمعين صغائر من الذنوب . داسې صغائر :

يؤاخذون بها ويعاتبون عليها ام لا بعد اتفاقهم على أنهم معصومون من الكبائر . په دې خو اجماع ده چې کبائرو نه معصوم دي دې کې اختلاف دي چې صغائر ترې کيږي او که نه .

ومن كل رذيلة فيها شين ونقص . هره صغيره چې په هغې کې نسبت د عيب کيږي او د بدي کيږي او د نقص کيږي هغې نه هم معصوم دي اجماعاً .

عند القاضي أبي بكر وعند الأستاذ أبي إسحاق وقال جمهور من الفقهاء من أصحاب مالك وأبي حنيفة والشافعي انهم معصومون من الصغائر كلها كعصمتهم من الكبائر اجمعها .

لکه د ټولو کبائرو نه چې معصوم دي دغه شان له ټولو صغائرو نه هم معصوم دي ځکه مونږ مامور يو په اتباع د دوي باندې .

في افعالهم واثارهم وسيرهم امراً مطلقاً من غير التزام قرينة فلو جوزنا عليهم الصغائر .

که مونږ پرې صغائر روا کړو .

لم يمكن الاقتداء بهم . بيا به ممکن نه شي اقتداي دوي پسې .

اذ ليس كل فعل من أفعالهم يتميز مقصده من القربة والإباحة أو المعصية .

ځکه د هغه په افعالو کې بيا څوک بيلولې شي چې قربت او اباحت يې کوم شو او معصيت يې کم شو مونږ خو په اقتدی مامور يو .

ولا يصح أن يؤمر المرء بإمتثال أمر لعله معصية .

دا خو بیا صحیح هم نه شوه چې یو څوک دي مامور شي په اقتدی د یو امر کیدي شي هغه معصیت وي .

بیا خو د انبیاء کل افعالو سره دا خطر پیدا شو چې دا به معصیت وي دا کار به یې کړې وي دا به معصیت وي بیا اقتدی پسې څنګه کوي :

لا سیما . خاصکر د هغه چا په اصولو باندې .

على من يرى تقديم الفعل على القول اذا تعرضا من الأصولين .

په اصولینو کې هغه علماء چې هغوي وایي فعل په قول مقدم دي ، نو د هغوي په نزد به دا اقتدئ څنګه شي .

یو قول دي بل فعل دي مونږ خو وایو چې قول مقدم دي بعضې اصولین وایي چې فعل مقدم دي تعارض کې نو دهغه چا په نزد باندې به بیا اقتدی څنګه شي .

قال الاستاذ ابو اسحاق الاسفرائني واختلفوا في الصغائر والذي عليه الاكثر ان ذلك غير جائز عليهم .

اکثر په دې دي چې صغائر هم پرې جائز نه دي .

وصار بعضهم الى تجويزها . بعضې علماء ذهاب کړې دي چې صغائر ترې کیږي .

ولا أصل لهذه المقالة . دې مقالې ته څه دلیل نشته .

وقال بعض المتأخرين ممن ذهب الى القول الاول الذي ينبغي ان يقال ان الله تعالى قد اخبر بوقوع ذنوب من بعضهم ونسبها اليهم وعاتبهم عليها واخبروا بها عن نفوسهم واشفقوا منها وتابوا وكل ذلك ورد في مواضع كثيرة لا يقبل التأويل جملتها وان قبل ذلك أحادها .

وكل ذلك مما لا يزري بمناصبهم وانما تلك الأمور التي وقعت منهم على جهة الندور وعلى جهة الخطأ والنسيان .

دلته خطاء په معنی د سهوې سره ده .

او تأويل دعا الى ذلك فهي بالنسبة الى غيرهم حسنات وفي حقهم سيئات .

ګوري لکه دا توريه خو دروغ نه دي دعامو خلکو باره کې جرم هم نه دي صديق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې د هجرت په وخت کې روان وه او نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې وه په لاره يو کس پرې شک راغلو وايي دا رجل څوک دي نو صديق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته ووېل:

رجل يهدني الطريق. سړي دي مونږ ته لار ښايي.

نو دده په ذهن کې لاره د جنت ښودل وه د هغه په ذهن کې د مديني لاره واچوله نو دا توريه وه دا خو کذب نه دي ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته چې د ثلاثة كذبات نسبت شوې دي هغه ټولې توري يې دي همدغه شان توري کړې دي خو په حق د اخص الخواصو کې له دغه څيز نه تعبير په کذب وشو جنيد بغدادي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي:

حسنات الابرار سيئات المقربين.

يو شي به ابرار کوي حسنه به وي ليکن د اخص الخواصو لپاره به هغه سيئه وي نو دغه شان نسبت د ذم که شوې دي يا نسبت د خطاء شوې دي که د سيئه شوې دي که هر څه نسبتونه ږرته شوې دي.

چونکې خلک اخص الخواص دي په دغه معنی باندې په حق د عوامو کې حسن دي ددوي په حق کې ترې نه تعبير دغې باندې شوې دي ساره بي بي ورسره وه ظالم بادشاه ته ورغې وايي دادې څه کيږي وايي دا مې خورده خو دا توريه وه کنه هغه ته يې ذهن کې خپله خور واچوله او په خپل ذهن کې خورددين مراد وه.

﴿فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ﴾.

وايي زه بيمار يمه نو هغوي ته يې ذهن کې ظاهري بيماري واچوله دده په ذهن کې هغه خرابي د طبيعت دده وه په شرک د هغوي باندې او په ميلو د هغوي باندې نو دغه شان دا توري دي ټولې.

﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ﴾ دا به يې دې مشر کړې وي نو دلته خو توريه نه وه هغوي خجل کول وه چې تبر ددې بوت په غاړه کې پروت دي تاسو معبود هم ورته وايي چې مشکل در باندې راشي محافظ هم دي ګنې نو اوس له ده نه تپوس وکړي چې دا بتان چا مات کړې دي.

﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ﴾ دې مشر کړي دي يو يې دا معنی ده.

بله یې دا معنی ده: ﴿بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ﴾، دا به دې مشر کړې وي.
دې خبرو کې فرق دي دا کار دي بوت کړې دي بل دا به ګوري دي بوت کړې وي. دا فرق لري اګر که تعبیر یو شان دي معمولي نکته کې فرق دي سره د ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ د دغه ځای بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ دغه معنی ده دا به دې بوت کړې وي یعنې ده نه تپوس وکړي دا به دې کړې وي هغوي چې سوچ وکړو چې دا خو جواب نه شي راکولې خجالت شول دا خو حقیقت کې کذبات نه وه.

ما كذب ابراهيم الا ثلاثة كذبات.
ورځ د قیامت کې دومره پاک خلک دي چې بیا کله امت ورشي د شفاعت لپاره وای ما نه دري کذبات وویل شوي ما ته حیاء راځي زه د خالق د وړاندې شفاعت نه شم کولې.
اوس دې نه ته تعبیر په معصیت او ګناه باندې او حقیقت ته نه ګوري چې دا ګناه وه که نه وه ګناه خو نه وه کنه دا خو لا دلیل د عصمت او پاکي د دوي دي چې دومره پاک خلک دي چې توریه یې کړې دَه ګناه یې نه ده کړي او بیا دومره حیاء ورځې چې خالق ته خوله نه خلاصوي چې ما ته حیاء راځي نسبت د ذنب یا د هر څه چې شوي.
یغفر الله لك ما تقدم من ذنبك وما تأخر. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خو نه مخکې ذنوب وه نه وروسته ذنوب وه نو دا همغه بعضې خطرات که نفس ته راشي هغه مراد وي او څه هموم په معنی د خطر النفس سره هغه مراد وي حقیقت یا عزم قلب یا عمل د صغیرې دا نه وي مراد او نه دوي دا کړې دي.
د ټولو انبیاء په واقعاتو کې چې صحیح محمل پیدا کړي همدغه شان واقعات وي د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ په واقعه کې چې: لا تقربا هذه الشجرة. ګوري هذه کې اشاره شوې ده او آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه شجره نه وه خوړلې د دې هم مثل په بل ځای کې ولاړه وه دا دې وخت کې ده اجتهاد کړې وه دې اجتهاد کې دي خطاء شو یو غیر پیغمبر چې په اجتهاد کې خطاء شي.
فله اجر واحد. په حدیث شریف کې راځي یو اجر دي د هغه د پاره خو چونکې شان او عظمت یې ډیر لوي دي یو عتاب دنیا کې راغې ورته چې د جنت نه پرې راکوز کړې شو ګنې چې دغه بوټي ته اشاره شوې وه دې نه یې اکل نه دي کړي.

قاضي ثناء الله صاحب ليکلي دا بل بوتي هم مثل ولاړ وه ده دا اجتهاد وکړو چې مشار اليه به خاص دغه بوتي وي نوعه ددې به نه وي لا تقربا هذه الشجرة ، دې شجرې ته مه نزدې کيږه نو دې کې دا امکان شته دي چې دا انګور مراد وي يا غنم مراد وي يعني غنمو ته مه ورنزدې کيږه انګورو ته مه نزدې کيږه .

خو ليکن ظاهراً خو ترې دا فهميږي دغې بوتي د انګور ته مه ورنزدې کيږه نو ده خو د امر امتثال وکړو دغې بوتې ته ورنزدې نه شو هلته په جنت کې نور هم مثل بوتي وه هغې نه يې خوراک وکړو په اجتهاد کې خطاء شو که دا اوس پيغمبر نه واى بل څوک واىي خداى به يو اجر ورکړي وايي خو چونکې شان غټ دي بس په دغه معمولي خطاء بمعنى السهو باندې نسيان باندې دنيا کې عتاب پرې راغي .

جلالين په حاشيه کې ليکي وايي که آدم عليه السلام ته پته واى چې زما په اولاد کې به محمد مصطفى پيدا کيږي وايي دغه وته به يې سره د جړو خوړلي وه او دا هيڅ نقصان نه وه يو بوتي يې وخوړو د غنم دانه بهانه شولو بابا ته رحمان بابا وايي نو دا رابهر شو صحيح ده رابهر خو شو نو نقصان دې که ګټه ده ګټه ده کنه ګټه يې کړې ده خپله خو ترې رابهر شو .

شعر :

**جنت ځاى د توالد تناسل نه وه ✻ د غنم دانه بهانه شوله بابا ته**

رحمان بابا وايي د خداى تعالى تقدير دا وه چې دا به بيا دومره اولاد به وي او جنت ددې شي ځاى نه وه د تقدير فيصله دا وه چې کافر به وي مسلمانان به وي جنت ته به ځي جهنم ته به ځي او جنت کې کافر څه کوي چې پيدا کيدل اولاد نه پيدا کيږي نو جنت ځاى د توالد تناسل نه وه نو د غنم دانه بهانه شوله بابا ته .

نو دې خو رابهر شو ليکن ګټه يې کړې ده که هلته واى يواځې به وايي اوس چې واپس دننه کيږي څومره لښکر به بوځي جنت ته ځان سره ډير عظيم لښکر به دننه کوي جنت ته يواځې خو نه ځي داسې هر پيغمبر عليه السلام .

که ترجمه تاسو کوي دې ځاى ته راشي يو ددې غلطو خلکو سره ترجمې مه کوي د هغوي الفاظ خراب وي غلط دي .

هغوي دغه ځای کې د آدم عليه السلام واقعه چې راځي او دا ايات راځي :

﴿إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾.

نو په دې ځای باندې امين الله وهابي يو بيان کې وايي : ﴿إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ حکيم ته حکيم يې په افعالو کې ته حکيم يې په صنعه خپله کې ته حکيم يې په ذنوبو د عبادو کې وګوره آدم عليه السلام نه ګناه وشوه ديکې دې هم غټ حکمت وه دا دده الفاظ دي .

نو د ځان نه دلته تفسير کوي ته حکيم يې په ذنوبو د عبادو کې بيا له ذم نه د آدم عليه السلام ذنب اخلي ځکه دې ځای سره زه دا ايات لګومه تعبير ترې نه په ذنب مه کوه په خطيء يې وکه په سهوه يې وکړه په نسيان باندې وکړه .

فنسيا ولم نجد له عزما . د آدم عليه السلام هغه تصفيه په خپله شوې ده .

فنسيا ولم نجد له عزما .

مونږ ده نه عزمي قلبي نه وه پيدا کړي په دې کار کې دغه شان د داود عليه السلام معروفه واقعه دغه نه ده چې خلک وايي داوريا په ښځه عاشق شوې وه فلان فلان تفوه وربانديږ قصداً خطره د کفر لري بلکې د داود عليه السلام قول هلته معروف دادی چې ده يوه خبره کړې وه بادشاه وه د نيمې دنيا بچو ته يې ويلي وه چې ۲۴ ګينتې به تاسو په کور کې په شريکه سبحان الله الحمد لله د خدای ذکر کوي زه د بادشاهي په خال کې يمه بيا په صبا باندې به د بادشاهي ډيټې تاسو کوي زه به ۲۴ ګينتې د خدای ذکر کومه .

تر ډير وخته دده په کور کې دا سلسله جاري وه چې دده کور د خدای له ذکر نه لږ هم نه خالي کيدو او حتی چې کومه ورځ به دده د ذکر وه نو ډير پهره دارن به يې درولي وه چې ملاقات د پاره به هم څوک نه راپريږدي ځکه چې ما دا وعده له خالق سره کړې چې زما کور کې يو سيکنډ هم د خدای له ذکر نه خالي تير نه شي نو دا عمل جاري وه .

يوه ورځ يې له ډير ميني نه دا خبره په خوله راغله چې يا الله تا په ما ډير احسان کړې دي چې داسې بادشاهي دې راکړي عزت دې راکړي فوجيان دې راکړي خو يا الله ما هم په خپل کور کې ګوري يو سيکنډ هم خالي ستا له ذکره نه ، نه دي پريښې .

دغه خبره د خالق خوښه نه شوله چې تا ولې داسې ياده کړه چې ما د هغې بدل کې داسې کار کړې دي نو د هغې نه بعد بيا هغه فرشتې راغلې تصور المحراب نو دا ورځ خو دده د قضي نه وه دده د ذکر وه او بچي يې په قضئ اخته وه او هغې کسانو سره د ډير طولاني بحث وکړو .

چې کله هغوي په ديوال واوښتل سوچ ورغې چې تا خو ويلي وه چې زه به يو سيکنډ هم په کور کې د الله د ذکر نه خالي نه پريږدمه ما خو دا فيصله وکړه او په فيصله کې ډير وخت تير شو نو دغه وخت کې :

﴿ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ﴾

هغه خپلې خبرې باندې بيرته خفه شو چې ما دا خبره ولې وکړه ګوري که دې کې سوچ وکړي دې کې څه ذم دده دا خو ګناه نه وه کنه داد خپل نعمت يو شکرانه يې ښکاره کوله خو خالق عجيب ذات دي خاصو عبادو سره عجيبي معاملې کوي .

دغه شان د يونس عَلَيْهِ السَّلَامُ حالتو ته که راشو هيڅ ګناه نه دده دري شپې ورځې به مسلسل دا قوم ته به دعوت ورکوي که سم نه شول دري شپې ورځې بعد بيا ترې وځه عذاب راځي دده دوه نيم شوا روزه تير کړل دريمه شپه يې هم تيره کړه .

صبح صادق کې چې تهجدونه را پاځيده نو کلي نه ګرد چاپيره د اسمان نه اور راکوز شوې وه نو د الله د خشيت او ديرې نه چې دا عذاب کې زه هلاک نه شمه دده دا کلي پريخودلو بهر شو ترې نه دې وخت کې سوچ ته دا رانغلو چې تا ته خو دري شپې او دري ورځې مکملې ويلي شوي دې کنه او صبح صادق نه لمر ختو پورې دوه دوه نيم ساعته وي کنه ته په دې دريو شوا روزو کې دوه نيم ساعته مخکې ولې وتلي يې .

نو اوس هغه خو د خدای له يرې تللې وه کنه نو چې دې لاړ څومره تکليف يې دنيا کې پرې راوستلو کشتي پرې بنده شوله بيا د ماهي په خيټه کې څومره وخت پروت وه او بيا هلته د لَّا إِلَٰهَ إِلَّا أَنتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ الظَّالِمِينَ ، ددې ورد يې کوه کوه :

فَلَوْلَا أَنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِينَ لَلَبِثَ فِي بَطْنِهِ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ .

خالق عجیب ذات دی وایي که ده ما ته د ماهي په خیټه کې تسبیح نه واي ویلې پروت به وه تر ورځې د قیامت پورې .

دلته د مسبحین یوه معنی ده که ده دنیا کې مونځونه ډیر نه کولې .

هسې که دا قصه سړي ټوله واوري او بیا نسبت د عصمت نه انکار کوي زه وایم د دوي دا ټول واقعات دلائل د عصمت دي او دلائل د پاکي د دوي دي چې دوي ډیر پاک خلک وه د هر قسم ګناه نه پاک خلک وه ګوري هغه یو قوم ته ولیږلي شو او دوه نیم ساعته یې د خدای له یرې نه دا کلي پریښوده او دې امت کې خو نور انبیاء نشته ختم نبوت دي او د هغې په ځای یوې علاقې ته یو عالم ولیږي .

او همدغه عالم چې نن صبا د عصمت نه به انکار کوي یا به په شان د انبیاء کې خبرې کوي سرسایه ورنه کړي جومات یې پریښې وي څرمنې ورنه کړي جومات یې پریښې وي دغسې په معمولي خبرو یې جومات پریښې وي بیا یو حنفي عالم دي محراب ته نه راولي بیا دا محراب داسې پریږدي چې صبا هغه د وهابي پنجپیري او د غلطي عقیدې په قبضه کې راشي نو دا قوم یې هلاکت اخروي ته ورکړو که وریې نه کړو چې امام خراب شو خو قوم خپله خراب دي کنه.

نو اوس ایاتونه نه نازلیږي کنه او دې امت نه د عذاب عامه رفعه شوې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خاطره نو چې یونس عَلَيْهِ السَّلَامُ د خدای له یرې دوه ساعته مخکې ذهاب کوي او قوم هلاکت ته پریږدي هغه ته دا تکلیف ورکوي دنیا کې نو زمونږ او ستاسې به څه حال وي د دې علماء چې دا مساجد په معمولي دنیاوي لالچ لپاره پریږدي او دا قوم هلاکت اخروي ته غورځوي دا قوم دې هلاک شي خو زما خیټه دې مړه شي نو مونږ خو ټول په دغه څیزونو کې اخته یو .

په دې نوم مونږ دلته نه یو ناست دې محراب کې چې دا زما قوم دي دا به زه اصلاح کومه د عقیدې اصلاح به یې کومه د عمل اصلاح به یې کومه زه مسئول د دې یم ما نه به د دې پوښتنه کیږي دغه فکر خو الا ماشاء الله ډیرو لږو خلکو سره وي .

ترغیبي خبرې مې د دې لپاره وکړي چې مساجد مه پریږدي په معمولي خبره باندې او چې بیا ډیر په کې تنګ شوي او دنیاوي ضروریات مو وه د کور خرچه یې نه درکوله نو خپل طالب خپل حنفي عالم هغوي ته پیدا کوي په مشوره بیا ترې نه ځي دا یو یو محراب چې

خالي کیږي د ډالرو په حساب سره امدن پرې وهاییانو ته راځي زما دا محراب دي بنار خو ډیر جوماتونه لري ډیر ځایونه دي کور نه دي واخلي جوماتونه دي جوړ کړي دي محراب کې څه خبره ده .

دلته زما یو مقتدي دې کوریې دي چې تقریباً نن صبا ۲۵ لاکه ارزښت لري او ۵۰ لاکه روپي ورته راوړي چې دا واخله دا ۲۵ لاکه ستا انعام دا ۲۵ لاکه دي د کور قیمت په دې به مونږ مسجد جوړ کړو مونږ سره به ته کار نه لري ته مونځ ته راځې راشه کنه مونږ سره کار مه لره دا ۲۵ لاکه په دې کور اضافه ولې ورکوي دا ټول پېښور بل ځای کې مسجد نه جوړیږي خو دا صرف زما ددې محراب د مقابلې لپاره چې دلته یوه حنفي اډه ده چې ددې مقابلې به په څه شکل سره وشي دا یو اځې زما نه ستاسو مساجد هم داسې دي چې تاسو په کې یې باقاعده اخوانه ډالر را روان دي محرابونه قبضه کول غواړي ستاسو مساجد هم دغسې دي نو دا په معمولي قیمت مه پریږدي چې نیولي مو دي د خپل قوم مصلحین شي او که کله هم تنګیدې یو خپل حنفي عالم ورته راولي بیا ترې نه ځي .

دغه شان د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه چې خطاء شوې نو واضحه ده چې خطاء ده هغه خلاصي کوي د دوه کسانو او سړي مړ کیږي نو دده خو قصد د مرګ نه وه کنه نو چې دې ته خطاء نه وایي نور نو خطاء څه ته وویل کیږي نو څومره نسبتونه کوم ځای کې چې څوک عصمت نه انکار کوي هغه دغه شان دي که سوچ ورکې وشي هغه حقیقت کې د هغوي پر عصمت دلائل دي او دهغوي د شان او عظمت دلائل دي نو امام قرطبي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي:

**فهي بالنسبة الى غيرهم حسنات وفي حقهم سيئات .**

د جنید بغدادي ددې قول شرحه چې **حسنات الابرار سيئات المقربين** ، زما په نظر چې مراد له حسناتو نه بدعات حسنه شي او مراد له سیئاتو نه یعنې هغه څیز چې ابرار هغې ته بدعت حسنه وایي د مقربو عبادو په نزد هغه سیئات دي هغوي بالکل بدعت کې حسن نه مني خو پنځپیریان درته نه یادوم دا خو ټول فساق سره جمع شوې دي دا چې کوم قریب عباد دي چې هغوي مسنونات فعلي قولي ټول په ځای راوړي امام رباني رَحِمَهُ اللهُ په بدعت کې حسن نه مني وایي نور په کې نشته خو څومره متبع د سنت دي ۶۳ کلو ته چې ورسیده خواص مریدان یې راغونډ کړل وایي زما په علم کې چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ څومره اختیاري سنن راغلي

ما یو هم نه دي پریښي ما عملي کړې دي خو دا دري شپیتو ٦٣ کالو کې دا وفات خو زما په اختیار کې نه دي خو زما په خپل خالق دا یقین دي چې هغه دومره غیرتي دي چې د خپل حبیب سنت یې څوک ژوندي کړې نو دا غیر اختیاري پرې هغه ژوندي کوي نو تاسو مې راغونډ کړي کیدې شي زه درنه لاړ شمه په همدغه میاشت کې دننه بیا امام رباني رحمه الله وفات شو دا اوس اتباع د سنت وه چې دومره کمال اتباع وه چې هغه غیر اختیاري سنت پرې خدای تعالی خپله پوره کړل د ابن عمر رضي الله عنه د اتباع د سنتو پسې لاړ شه بنه خبره ده بخاري را اخلي ابن عمر رضي الله عنه چې به حج ته تللو نو په هغه لار به تللو چې په کومه نبي علیه السلام تللې دي کوم ځای کې چې ناست دي هلته یې ناسته کړي کوم ځای کې چې مونځ کړې هلته به یې مونځ کولو نو کوم وهابي دا کار کړې دي د اتباع د سنتو دعوی چې کوي دا کار یې نه دي کړې زه یې نه کومه نو چې کوم یې کړي هغه خو راتینګ کړي یو ځل کنه هغه کوم یې چې نه دي کړي بیا یې نه کوي هغه روستي مرتبه ده هغه هم بنه خبره ده خو چې کله پوره سنت عملي شي.

تفسیر قرطبي جلد ۲ صفحه ۱۳۰ وَتُبْ عَلَيْنَآ إِنَّكَ أَنتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ شرحه کوي:

وهم انبياء معصومون. نو چې دوي معصوم دي د تُب علینا څه معنی شوه.

فقالت طائفة طلباً لتثبيت والدوام لا أنهما كان لهما ذنب. نه چې دوي ګنهګار وه.

قلت وهذا حسن. دا بنکلي تاویل دي.

تفسیر ابن کثیر جلد ۵ صفحه ۳۵٦:

قلت أما الأنبياء عليهم السلام فكلهم معصومون مؤيدون من الله عزوجل وهذا مما لا خلاف فيه بين العلماء المحققين من السلف والخلف.

تفسیر فتح القدیر للشوکاني جلد ۱ صفحه ۳۸۱:

والانبياء معصومون من الكبائر ومن الصغائر التي فيها رذيلة اجماعاً.

هغه صغیره چې د نقص نسبت کوي ورته هغې نه هم په اجماع سره معصوم دي.

تفسیر الرزاي جلد ۱۰ صفحه ۱۲٦:

الآية دالة على ان الانبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ معصومون عن المعاصي والذنوب لأنها دلت على وجوب طاعتهم مطلقاً فلو أتوا بمعصية لوجب علينا الاقتداء بهم في تلك المعصية فتصير تلك المعصية واجبة علينا .

البحر المحيط جلد ٨ صفحه ٢١۴ :

قال ابن عطية واجمع العلماء على ان الانبياء عليهم الصلاة والسلام معصومون من الكبائر ومن الصغائر التي هي رذائل .

عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ٢٦ صفحه ٢٣٦ :

والأنبياء معصومون من الكبائر بالاجماع واختلف في جواز وقوع الصغيرة .

اختلاف دي په جواز د وقوع د صغيرې ددوي کې چې صغيرې ترې نه کيږي او که نه.

قلت ملهمي . دې وايي زما رايه داده :

أن الأنبياء معصومون من الكبائر والصغائر قبل النبوة وبعدها .

مخکې له نبوت نه او وروسته له کبائرو او صغائرو نه معصوم دي .

والذي وقع من بعضهم شيء يشبه الصغيرة . چې مشابهي د صغيرې دي .

لايقال فيه . نه شي ويلې په هغې کې چې د ګناه ده .

الا انه . مګر ويلې شي .

ترك الافضل وذهب الى الفاضل . ترک د افضل يې کړي او ذهاب يې فاضل ته کړې .

اکمال المعلم شرح صحيح مسلم للقاضي عياض جلد ١ صفحه ٣٧٢ احاديث ذکر کوي بيا وروسته وايي :

وفي هذا دليل على صحة قول المحققين أن الكفر لا يصح قبل النبوة على الأنبياء وان نبينا وسائرهم معصومون منه من سائر المعاصي ثابت والايمان من صغرهم الا ترى كيف حشي صدره وقلبه حكمة وايماناً من صغره .

د نبي عليه السلام هغه سينه چې اپريشن شوه هغه څنګه د حکمت نه او د ايمان نه ډکه شوې وه هغه يې پرې دليل ګرځوي .

﴿ مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ ﴾ هغې نه هم بعضې خلک استدلال کوي :

ولا الايمان باندې تفسير روح المعاني وګوري هلته بنکلي جواب دادی چې مراد له ايمان نه صلواة دي دوه يمه ۲ سيپاره کې ايات راځي :

﴿ مَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ ﴾ خدای ستاسو مونځ نه ضائع کوي يعنې چا چې هغه مخکې بيت المقدس ته مونځونه کړې دي د هغې استفسار شوې وه چې هغه څنګه شول ايات نازل شو : ﴿ مَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ ﴾ اى صلاتكم . نو ما كنت تدري ما الكتاب ولاالإيمان ولا الصلاة.

د مانځه تفصيل در ته ياد نه وه .

اكمال المعلم شرح صحيح مسلم للقاضي عياض جلد ۱ صفحه ۳۷۲ :

ولا خلاف ان الكفر عليهم من بعد النبوة غير جائز عليهم انهم معصومون منه واختلف فيه قبل النبوة والصحيح انه لا يجوز كما قدمناه قبل هذا واحتججنا عليه ثم اختلف في المعاصي فلا خلاف ان كل كبيرة من الذنوب لا تجوز عليهم وانهم معصومون منها واختلف مشائخنا وغيرهم هل ذلك من طريق العقل او الشرع فذهب الاستاذ ابو اسحاق ومن تبعه ان ذلك ممتنع من مقتضي دليل المعجزة وذهب القاضي ابو بكر فيمن وافقه ان ذلك من طريق الاجماع وذهبت المعتزلة الى ان ذلك من طريق العقل ونفور النفس عنهما .

بيا خو نفرت ترې نه راځي چې دوي نه معصيات وشي اتباع يې خلک نه کوي .

دا رنګې قاضي عياض اکمال المعلم جلد ۱ صفحه ۳۷۳ کې ليکي :

وكذلك لا خلاف أنهم معصومون من الصغائر . ورو نه هم معصوم دي .

التي . هغه . تزري بفاعلها . چې نسبت د عيب فاعل ته کيږي .

وتحط منزلته وتسقط مروءته . د هغه حسن او حسن خلق ساقطوي .

واختلفوا في وقوع غيرها من الصغائر منهم فمعظم الفقهاء والمحدثين والمتكلمين من

السلف والخلف على جواز وقوعها منهم . يعني قبل النبوة مخكې د نبوت نه هغه صغيره چې هغه د عيب نسبت نه کوي په ذات دده کې واي د هغې نسبت يې جائز کړې دي .

وحجتهم ظواهر القرآن والأخبار وذهب جماعة من اهل التحقيق والنظر من الفقهاء والمتكلمين من ائمتنا الى عصمتهم من الصغائر كعصمتهم من الكبائر .

وان منصب النبوة . او منصب د نبوت . يجل . اوچت دي .

عن مواقعتها . له وقوع د صغائرو نه .

جملة ومخالفة الله عمداً وتكلموا على الأحاديث الواردة في ذلك وتأولوها . کوم روايات چې د داود عَلَيْهِ السَّلَام وغيره په خطيئاتو کې څوک نقلوي په حديثو کې خبرې دي .

وان ما ذكر عنهم من ذلك انما هو ما كان منهم على تاويل او سهو او غير اذن من الله في اشياء اشفقوا من المؤاخذة بها . اذن ورته نه وي شوې لکه يونس عَلَيْهِ السَّلَام تللي دي د يري د لاسه .

واشياء كانت منهم قبل النبوة وهذا هو الحق لما قدمناه . حقه داده چې له صغائرو نه هم دوي پاک دي .

شرح سنن ابن ماجه جلد ١ صفحه ٢٧٠ ، نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايي : اني لأستغفر الله . زه په ورځ کې ١٠٠ ځل استغفار وايمه يا دا اياة : واستغفر لذنبك وللمؤمنين وللمؤمنات ثم الإستغفار منه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مع انه قد غفر له ما تقدم من ذنبه وما تأخر ليس لمغفرة الذنوب. ددې لپاره نه دي .

فان الانبياء عليهم الصلاة والتسليمات معصومون من الكبيرة والصغيرة على الاصح ولكن لا يخفى أنه لا بد للنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من معاشرة الأمة لتبليغ الاحكام .

وايي دا استغفار د څه لپاره دي وايي دا دې لپاره دي چې انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَام د تفكر او د مراقبې مع الله حال باندې مامور دي چې دوي به هميشه مستغرق وي في صفات الله هلته مامور دي په دعوت د خلکو چې څنګه دعوت د خلکو ته متوجې شي هغه استغراقي حال يې پاتې شي چې پاتې شي دا دوي استغفار په دغه حال باندې وايي الله ته په دې ناراضه مه شي

رانه چې زه خو ستا هغه استغراق او تفكر ته پيدا ومه خو ستا د عبادو په دعوت کې مې لږ وخت صرف کړو نو ستا طرف نه مې توجو عبادو ته شوه وايي دا په دغه حالت استغفار وايي په ذنوبو يې نه وايي نو دې وايي چې هغوي دې د پاره استغفار نه وايي چې ګنې ګناه ترې شوې ده دوي معصوم دي .

ليكن لا بد للنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من معاشرة الامة لتبليغ الاحكام . دوي به معاشرت له امت سره کوي د رسولو او د احکامو لپاره .

وفيصلة خصوماتهم وتعليم ادابهم ففي هذه الحالات لا بد له من مناسبة بينه وبين الخلق وهذا الاشتغال بالخلق يصرفه اړوي ده لره .

عن المشاهدة التامة في الجملة . هغه مشاهده او استغراق نه يې راواړولو عبادو ته .

لأنه نقص له . چې دا ده د پاره نقص دي .

بل هو غاية مقاصده ولكن يحصل به الفتور في الحالة السابقة فيلتجي الى الله تعالى بالاستغفار لطلب الحالة السابقة . کوم کې چې استغراق تام او شهود وه .

فيض القدير د علامه مناوي جلد ۳ صفحه ۲۴۰ ؛

امنت بالله وملائكته وكتبه ورسله وبان لله رسلاً أرسلهم الله الى الناس لإرشادهم الى ما فيه مصلحة معاشهم ومعادهم وهم معصومون من الذنوب كبيرها وصغيرها .

وايي دا به يې عقيده وي چې خداى تعالى عبادو د اصلاح د پاره رسل راليږلي دي او دې سره به يې دا عقيده وي چې دوي معصوم دي د كبيرې او صغيرې نه نو هله ايمان په رُسُل باندې راغې او كه چيرته يې دا عقيده وي چې رُسل يې راليږلي دي خو معصوم نه دي وايي دا په امنت بالله کې په ورُسله باندې يقين رانغې نو ګويا کې عقيده د عصمت يې له مؤمن به نه کړه چې رُسل ته به د عصمت عقيده ساتي نو دا به هله ايمان بالرسل وي .

نو دا چند اقوال وه د علماو په تلاش سره ما پيدا كړل نو دغه نچوړ ثابتوي چې اجماعاً دوي له صغائرو او كبائرو نه دوي پاک دي .

مسئله د عصمت الانبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ خلاصه شوه .

